د پوهنې وزارت

# د رسامۍ هنر

## څلورم ټولگی



د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ ش





# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان
دا هېواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم

د پوهنې وزارت

# د رسامۍ هنر

## څلورم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ.ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** د رسامۍ هنر

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د هنر برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارټمنت غړي

**ټولګی:** خلورم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۷ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهیر مطبعه

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه يې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکي هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

# لوست ۱

# د خټکي رسمول

**موخه:** د بهرنیو خطونو په واسطه چې پر نرم پنسل پرداز شوي وي، د خټکي له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنه:** • کله مو مرحله په مرحله په پنسل خټکی رسم کړی دی؟



دویم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې د بهرنیو خطونو په پام کې نیولو سره مرحله په مرحله خټکی رسم کړي، په پنسل دې پرداز ورکړي، روښانه برخې او تیاره برخې دې څرګندې کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې خټکی رسم کړي، په پنسل دې پرداز او انځور دې روښانه کړي.

لوست ۲

# دخټکي رنګول

**موخه:** زده کوونکي به د خټکي په رسمولو او رنګولو پوه شي.

**پوښتنه:** • تاسو د خټکي د شکل، رسمولو او رنګولو په اړوند څه ویلی شئ؟
او خټکی کوم رنګونه لري؟



دویم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې د پنسل په واسطه پر کمزورو خطونو د ښوونکي له لارښوونې سره سم لاندې انځور رسم کړي او له بشپړېدو وروسته دې مرحله په مرحله رنګ کړي.



لومړی انځور



## کورنۍ دنده

پر کمزورو خطونو خټکی رسم کړئ، وروسته يې رنګه کړئ او بيايې ټولګی ته راوړئ.

لوست ۳

# د فیل د سر رسمول

**موخه:** د فیل د سر له جوړښت او رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • کله مو د فیل سر په پنسل رسم کړی دی؟
• تاسو ویلای شئ چې د فیل سر څنگه رسموئ؟



دویم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي، هره ډله دې مرحله په مرحله د فیل د سر د رسمولو په اړه فکر وکړي. انځور دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم لاندې انځور رسم کړي او بیا دې، یوه ډله خپل کار بلې ډلې ته ور وښیي.



لومړی انځور

## کورنی دنده

پورتنی د فیل سر د درسي کتاب له مخې رسم کړئ او بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ.

څلورم لوست

# د فیل د سر رنګول

**موخه**: دباندینو خطونو په پام کې نیولو سره د فیل سر له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:**
- تاسو ویلی شئ چې فیلان په کومو ځایونو کې ژوند کوي؟
- زموږ په ګران هیواد کې فیلان شته؟
- لومړی د پنسل په واسطه د فیل د سر رسمول له کوم پړاو څخه پیلوئ؟



دویم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې له ځوابونو ورکولو وروسته په ژورې پاملرنې سره مرحله په مرحله د فیل سر رسم، وروسته دې رنګه کړي او د انځور د رسمولو په وخت کې دې له ښوونکي څخه مرسته وغواړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



د درسي کتاب له مخې پورتنی د فیل سر رسم کړئ، بیا هغه رنګه او ټولګي ته یې راوړئ.

لوست ۵

# د تور بانجان رسمول

**موخه:** د پنسل په واسطه د تور بانجان له رسمولو او پرداز سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:**
- تاسو د تور بانجان په رسمولو کې له کومو وسایلو گټه اخلئ؟
- کله مو تور بانجان رسم او پرداز کړی دی؟



دریم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې په ټولګي کې له مشورې وروسته لاندې انځور مرحله په مرحله رسم کړي، وروسته دې خپل رسمونه نورو ډلو ته وروښيي، چې د رسامۍ او نقاشۍ له هنر سره يې مينه زياته شي.



لومړی انځور



دويم انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له پورتني رسم سره سم ځو وارې توربانجان رسم کړي او بيا دې ټولګي ته راوړي.

## لوست ٦

# د تور بانجان لاسي کار

**موخه:** د تور بانجان د لاسي کار د جوړولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • تاسو څنګه کولای شئ له ساده موادو څخه تور بانجان د لاسي کار په بڼه جوړ کړئ؟

• د کومو رنګونو په واسطه تور بانجان رنګوئ؟



دویم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې له ېیلا ېیلو موادو، لکه: کاغذ، موم او بې کاره کاغذونو څخه د تور بانجان د لاسي کار لپاره کار واخلي او دښوونکي له لارښوونو څخه دې ګټه واخلي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



له پورتنیو سبزیو څخه یوه د پنسل په واسطه رسم او پرداز کړئ او بیا یې ټولګي ته راوړئ.

# لوست ۷

## د مڼې او پاڼې رسمول

**موخه**: پر پنسل د مڼې او پاڼې له رسمولو او رنګه کولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:**
- تاسو کله مڼه پر پنسل رسم او رنګه کړې ده؟
- د پاڼې په رسمولو کې له کومو رنګونو څخه ګټه اخلئ؟



دریم انځور

**فعالیت:** کله چې ښوونکی منه او پاڼه پر تختې رسموي، زده کوونکي دې ورته ژوره پاملرنه وکړيُ له تختې څخه دې د منې او پاڼې د رسمولو پر وخت د ښوونکي کړه وړه په پام کې ونيسي او بيا دې د هغه په څېر رسم او رنګه کړي.



لومړی انځور



دويم انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې له خپلې خوښې سره سم پورتنۍ منه او پاڼه رسم او رنګه کړي او بيا دې ټولګي ته راوړي.

# ۸ لوست

# د ونې او پاڼې رسمول

**موخه:** زده کوونکو ته د ونې او پاڼې د رسمولو او رنګولو د طریقو ور زده کولو سر بلدتیا پیدا کړي.

**پوښتنې:** • تاسو د ونې په رسمولو کې له کومو رنګونو ګټه اخلئ؟
• ستاسې په فکر د کومې پاڼې رسمول اسان دي؟



دریم انځور



**فعالیت:** زده کوونکي په ډلو وویشئ، هره ډله دې لاندې انځورونو او د تختې پر مخ رسم ته په پاملرنې سره په خپلو منځونو کې مشوره وکړي، د هغې طرحې د رسمولو په اړوند دې معلومات ترلاسه کړي او بیا دې هغه رسم کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له خپلې خو ښې سره سم پورتني د ونې او پاڼې انځورونه رسم او رنګه کړي او بیا دې ټولګي ته راوړي.

لوست ۹

# د منې او ونې رسمول

**موخه:** د منې او ونې د رنګولو له طریقې سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:**
- تاسو ویلای شئ د منې او پاڼې په رنګونو کې څه توپیر دی؟
- په لاندې انځور کې څه وینئ؟



دریم انځور

**فعاليت:** زده کوونکي دې لاندې انځورونو ته ژوره پاملرنه وکړي، د کمزورو خطونو په واسطه دې رسم کړي، او بیا دې رنګه کړي، ښوونکی دې د رنګولو په اړوند له هغوی سره مرسته وکړي.



لومړی انځور



دويم انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د پورتنۍ مڼې او ونې د رنګولو په اړوند فکر وکړي، بیا دې  هغه رسم او رنګه کړي او ټولګي ته دې راوړي.

لوست ۱۰

# رومي بانجان

**موخه**: د باندنیو خطونو په واسطه د رومي بانجان له رسمولو او رنګه کولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • تاسو د رومي بانجان په رنګولو کې له کوم رنګ څخه کار اخلئ؟
• کله مو رومي بانجان رسم او رنګه کړی دی؟



دریم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې په ژورې پاملرنې رومي بانجان رسم او په رنګولو کې دې له مناسبو رنګونو څخه ګټه واخلي، که چېرې رسم په ټولګي کې بشپړ نه شو، نو په کور کې دې بشپړ کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنی رومي بانجان په کتابچو کې رسم او رنګه کړي او بیا دې ټولګي ته راوړي.

لوست ۱۱

# د مرغانو سرونه

**موخه:** د مرغانو د سر له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنه:** تاسو کله د کومې مرغۍ سر رسم او رنګه کړی دی؟



دریم انځور

**فعالیت:** د هرې ډلې زده کوونکي دې د خپلې خوښې سره سم یو انځور رسم کړی، روښانه او تیاره برخه دې دپرداز په واسطه وښیي، وروسته دې هغه رنګه کړي او نورو ټولګیوالو ته دې ورښکاره کړي.







لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



له پورتنیو مرغانو څخه د یوه مرغه سر رسم او تمرین کړئ او بیایې ټولګي ته راوړئ.

# لوست ۱۲ د مرغانو رسمول

**موخه**: د رسمولو (سکيج) کولو له طريقې او د روښانه برخې او سيورې له پرداز سره د زده کوونکو بلدتيا.

**پوښتنې**: • تاسو په لاندې انځور کې کوم مرغه ليدلای شئ؟
• راتلونکی انځور څنګه رسم او پرداز کولای شئ؟



دويم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې له خپلې خوښې سره سم د مرغانو یو انځور رسم او وروسته دې د ښوونکي په لارښوونه پرداز کړي، هڅه دې وشي چې تناسب په پام کې ونیول شي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې پخپلو کتابچو کې یو مرغه په پنسل رسم او پرداز کړي، بیا دې ټولګي ته راوړي.

## لوست ۱۳

# د الوتونکي رنګول

**موخه:** د الوتونکو له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • تاسو د مرغانو په رنګولو کې له کوم رنګ څخه ګټه اخلئ؟
• تاسو ویلای شئ چې الوتونکی څنګه رسم او رنګه کیږي؟



دویم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې لاندیني انځور ته ژوره پاملرنه وکړي، هغه دې د کوچینوالي او لویوالي په پام کې نیولو سره رسم او بیا دې رنګه کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پخپلو کتابچو کې پورتنی الوتونکی رسم او رنګه کړي او بیا دې ټولګي ته راوړي.

## لوست ۱٤

# لاسي کار

**موخه**: له ساده سیمه ییزو موادو څخه د لاسي کار جوړولو له طریقې سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنه:** تاسو په لاسي کار کې له کومو موادو څخه ګټه اخلئ؟



خلورم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې په لومړي ګام کې لویوالی او کوچنیوالی په پام کې ونیسي، د الوتونکو اسکلیت بندي دې له بشپړیدو وروسته، د ښوونکي له لارښوونې سره رسم او رنګه کړي.



لومړی انځور



دویم انځور



دریم انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له ساده سیمه ییزو موادو څخه یو لاسي کار جوړ او بیا دې ټولګي ته راوړي.

لوست ۱۵

# د پسه د سر رسمول

**موخه:** د پسه د سر له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • تاسو ویلای شئ لاندې انځور د کوم حیوان دی؟
• کله مو دیوه پسه سر رسم او رنګ کړی دی؟



درېيم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې له لاندینیو انځورونو څخه د یوه انځور تناسب په پام کې ونیسي، بیا دې په پنسل رسم، وروسته دې بشپړ او پرداز کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې د پورتني پسه سر انځور د کتاب له مخې رسم او رنګه کړي او بیا دې ټولګي ته راوړي.

لوست ۱٦

# د آس د سر رسمول

**موخه:** له بېلا بېلو اړخونو څخه د آس د سر سکیج او رسمولو سره بلدتیا

**پوښتنې:** • تاسو کله د آس سر رسم کړی دی؟
• په لاندینیو انځورونو کې څه وینئ؟



دویم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې د آس سر د یوه حرکت په وخت له خپلې خوښې سره سم رسم کړي.



لومړی انځور

**کورنۍ دنده**



زده کوونکي دې د پورته آس د سر د انځورونو یو حرکت غوره او بیا دې هغه رسم او پرداز کړي او ټولګي ته دې راوړي.

# لوست ۱۷

# د آس د سر رنګول

**موخه:** د آس د سر له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • تاسو هغه رنګونه چې د آس په سر کې يې وينئ د کومو رنګونو له ترکيب څخه تر لاسه شوي دي؟

• په لاندې انځور کې کوم رنګونه وينئ؟



دويم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې لومړی د آس سر رسم، وروسته دې رنګه کړي او هڅه دې وکړي چې له شکل سره سم رنګه شي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



د آس سر په کور کې رسم او رنګه کړئ او بیا یې ټولګي ته راوړئ.

## لوست ۱۸

# د انګورو د وږي رسمول

**موخه**: زده کوونکي به د انګورو د وږي د رسم (سکيج) په طريقه وپوهيږي.

**پوښتنې**:
- تاسو څو ډوله انګور رسمولای شئ؟
- کله مو د انګور ډولونه ليدلي او هغه مو رسم کړي دي؟



**فعالیت:** لاندې رسم ته وګورئ، لومړی یې بهرني خطونه رسم، بیا یې په پنسل تت پرداز کړئ او وروسته انځور روښانه بر جسته کړئ.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

پورتنی د انګورو وړی رسم او پرداز کړئ او بیا یې ټولګي ته راوړئ.

# لوست ۱۹

# د انګورو د وړي رنګول

**موخه**: د انګورو دوړي د رسمولو او رنګولو له طریقو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • تاسو څو رنګه انګور لیدلي او کله مو رنګ کړي دي؟
• د انګورو د وړي په رسمولو او رنګولو کې له کومو وسایلو ګټه اخلئ؟



دویم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي په ډلو ووېشئ، د لاندې انځور په رنګولو کې دې یو له بل سره مشوره وکړي، وروسته دې بشپړ شوي کارونه د ټولګیوالو په وړاندې ننداري ته وړاندې کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

د انګورو د وړي رنګول په پام کې ونیسئ، هغه رسم کړئ او بیا یې ټولګي ته راوړئ.

# لوست ۲۰

# د پتنګ رسمول

**موخه:** د پتنګ د رسمولو او رنګولو په طرز د زده کوونکو پوهیدل.

**پوښتنې:**
- تاسو ویلای شئ چې پتنګ کوم رنګونه لري او کله مو هغه رسم کړی دی؟
- په لاندې انځور کې کوم رنګونه وینئ؟



پنځم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې له خپلې خوښې سره سم له لاندې انځورونو څخه یو رسم او وروسته دې رنګ کړي، په ټولو برخو کې دې د ښوونکي لارښوونې په پام کې ونیسي.



لومړی انځور



دويم انځور



دريم انځور



څلورم انځور

## کورنۍ دنده



له کاغذ یا نورو موادو څخه یو پتنګ جوړ کړئ او ټولګي ته یې راوړئ.

لوست ۲۱

# د نوښتګرو انځورونو جوړول

**موخه**: د لاس د ګوتو او رنګ په واسطه د نوښتګرو انځورو له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنه:** تاسو په لاندې انځور کې کوم یو رنګ وینئ؟



دویم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې لاندې انځورونه، د لاس د ګوتو او رنګ په واسطه د کاغذ پر مخ کار کړي، دخطونو د ور زیاتیدو په واسطه دې له هغې ښخه د کتاب په شان ډول ډول شکلونه جوړ کړي، داسې انځورونه چې دوی یې ویني، په خپله خوښه جوړ کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

په یوه ابتکاري انځور کار وکړئ او بیا یې ټولګي ته راوړئ.

# لوست ۲۲

## د پاڼې ډیزاین

**موخه**: زده کوونکي به له ساده محیطي موادو څخه د بېلا بېلو ډیزانو نو له جوړولو او رنګولو سره بلد شي.

**پوښتنې**: • تاسو له خپل محیط څخه د یوه ډیزاین د جوړولو لپاره کوم مواد غوره کوئ؟
• تر اوسه مو د اسلامي سبک ډیزان لیدلی او رسم کړی دی؟



دریم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې سر بیره پر لاندینیو ډیزاینونو، ځینې ډیزاینونه چې له ټولګي څخه د باندې شتون لري له خپلې خوښې سره سم جوړ او رسم کړي، بله ورځ دې د ټولګیوالو په وړاندې ننداري ته وړاندې کړي، ښوونکی دې د دوی کارونه و ارزوي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده

یو دیزاین جوړ کړئ او بیا یې ټولګي ته راوړئ.

# لوست ۲۳

# د ګلانو نوښتګر ډیزاینونه

**موخه**: له سیمه ییزو موادو څخه نوښتګرو ډیزاینونو جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • تاسو ویلای شي،له کومو محیطي موادو څخه ډیزانونه جوړیږي؟
• په لاندې انځور کې څه شیان وینئ؟



دویم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي چې کوم انځور جوړوي او یا یې ډیزاینوي، پر هغه دې فکر وکړي په پوره پاملرنې دې هغه جوړ کړي، سر بیره پر لاندې انځور، کولای شي هغې ته په پاملرنې سره په خپله خوښه نور انځورونه هم ډیزاین او رسم کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې له خپلې خوښې سره سم له سیمه ییزو موادو څخه یو ډیزاین جوړ او ټولګي ته راوړي.

## لوست ٢٤

# د گل د ډيزاين رسمول

**موخه:** زده کوونکي به دډيزاين لپاره د رنگونو په غوره کولو وپوهيږي.

**پوښتنې:** • تاسو د گل په ډيزاين کې له کومو رنگونو څخه گټه اخلئ؟
• د گلانو له رنگولو څخه څه ډول احساس کوئ؟



دريم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې لاندې شکلونه مرحله په مرحله رسم او وروسته دې هغه رنګه کړي، د رنګولو په وخت دې له ښوونکي څخه مرسته وغواړي او خپل بشپړ شوي کارونه دې د ارزونې لپاره ښوونکي ته ورکړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده

په کور کې ډول ډول ډیزاینونه رسم، بیا یې رنګه کړئ او ټولګي ته یې راوړئ.

# لوست ۲۵ خيالي رسم

**موخه:** د خيالي شکلونو له جوړولو او رسمولو سره د زده کوونکو بلدتيا.

**پوښتنې:**
- تاسو کله يو انځور له خپل ځان او ذهن څخه رسم او رنګه کړی دی؟
- د خيالي انځورنو په رسمولو کې له کومو وسايلو څخه ګټه اخلئ؟



**فعالیت:** د انځورونو د رسمولو په هکله دې زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونو څخه معلومات تر لاسه کړي، د خیالي رسمونو په پام کې نیولو سره دې یو انځور له خپله ذهنه رسم او بیا دې رنګه کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خیالي رسمولو په اړوند په کورونو کې ژور فکر وکړي، وروسته دې هغه رسم او رنګه کړي او ټولګي ته دې راوړي.

## لوست ۲٦ له طبیعي موادو څخه نوښتګر انځور

**موخه**: له طبیعی موادو څخه د نوښتګرو انځورونو له طرحې سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې**: • تاسو تراوسه کوم نوښتګر انځورونه جوړ کړي دي؟
• څه شی د استعدادونو د پراختیا لامل کیږي؟



څلورم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې په لاندینیو انځورونو سربیره یو نوښتګر انځور جوړ کړي او خپل بشپړ شوی کار دې نورو ته ور ښکاره کړي، چې د دوی په کارونو کې د پر مختګ لامل شي، که له ستونزې سره مخامخ شي، له ښوونکي دې مرسته وغواړي.



لومړی انځور



دويم انځور



دريم انځور

## کورنۍ دنده

په کور کې نوښتګر شکلونه رسم کړئ او بیا یې ټولګي ته راوړئ.

# ۲۷ لوست
# د رنگونو په واسطه نوښتگر انځورونه

**موخه**: له هغو موادو څخه چې په واک کې یې دي، دنوښتگرو انځورونو له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې**: • تاسو ویلای شئ هغه مواد چې ابتکاري شکلونه ترې جوړېدلی شي کوم دي؟
• د چاپیریال له موادو څخه کوم شیان جوړولی شئ؟



دویم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي کولای شي له هغو موادو څخه چې لاس رسی ورته لري، لاندې انځورونه جوړ کړي، له هغه څخه په ګټې اخیستنې سره دې ځینې انځورونه، لکه: ګل، ونه، غر د نوښتګرو انځورونو په بڼه د رنګ او یا د صفحې پر مخ درنګ د پو کولو په واسطه رامنځ ته کړي او ښکلي انځورونه دې جوړ کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپله خوښه نوښتګر انځور رسم او ټولګي ته دې راوړي.

# لوست ۲۸ د کاغذي ګلانو جوړول

**موخه:** له کاغذ څخه د ګلانو له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • تاسو له سپین او رنګه کاغذ څخه کوم شیان جوړولای شئ.
• له کاغذ څخه د ګلانو د جوړولو پر وخت کې څه احساس کوئ؟



دويم انځور

**فعالیت:** د لاندې انځور پراوونو ته ژوره پاملرنه وکړئ، د کتاب له لارښوونې او نمونې سره سم په کتاب کې د کاغذي ګلانو انځورونه لومړی د سپین او رنګه کاغذ پر مخ رسم او بیا یې بیاتي کړئ او دبل سپین کاغذ پر مخ یې سریښ کړئ چې یو ډول کاغذي ګلان له هغه څخه تر لاسه شي.




## کورنۍ دنده



په کورکې له مور او پلار څخه د کاغذي ګلانو په جوړولو کې مرسته وغواړئ او بیا یې ټولګي ته راوړئ.

# لوست ۲۹

## دوه بې طرفه رنګونه

**موخه**: له دوو بې طرفو رنګونو څخه په ګټې اخیستنې سره د انځورونو له رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:**

- تاسو ویلای شئ چې له بې طرفو رنګونو څخه په نقاشۍ کې څه وخت ګټه اخیستل کیږي؟
- په لاندې انځورونو کې د بې طرفه رنګونو نمونه واخلئ؟



سپین تور

**فعالیت**

زده کوونکي دې د دوو بېلابېلو رنګونو له ترکیب څخه دریم رنګ ترلاسه کړي او نوم دې واخلي.




**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې دوه بېلابېل رنګونه سره ترکیب کړي او بیا یې ټولګي ته راوړي.

# لوست ۳۰

# خيالي رسمونه

**موخه**: زده کوونکي به له خيالي انځورونو سره چې د دوی په خيال کې را ګرځي، د کاغذ پر مخ له طرحې سره بلد تيا پيدا کړي.

**پوښتنه:** تا سو ته د خيالي  شکلونو له جوړېدو وروسته څه احساس پيدا کېږي؟



دريم انځور

**فعالیت:** زده کوونکي دې مخکې له دې چې انځورونه جوړکړي، لاندې انځور ته ژور وګوري د څو دقیقو لپاره په ژورې پاملرنې سره د نوښتګرو انځورونو په اړه دې فکر وکړي او وروسته یې دې عملي کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې د کتاب له انځور څخه په ګټې اخیستنې سره یو خیالي رسم له خپل فکر څخه رسم او ټولګي ته دې راوړي.

## لوست ۱

## (۱ او ۲) مخونه

د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه) لومړی ساعت

| | | |
|---|---|---|
| د لوست عنوان | د ختکي رسمول | |
| عمومي موخې | د پنسل په واسطه د ختکي له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| -دزده کړې موخې:<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- د پنسل په واسطه د ختکي له رسمولو او رنګولو سره بلد شي.<br>- دپنسل په واسطه ختکی رسم او رنګه کړای شي.<br>- په پنسل د ختکي له رسمولو او رنګولو سره مینه پیدا کړي. | |
| د تدریس طریقه | ځانګړې او ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه، عملي کار او تمرین. | |
| د تدریس وسیلې | کتاب، کتابچه، قلم، پنسل پاک، تباشیر، برس او دنقاشي مویک، د رنګ قطی او د اوبو لوښی. | |
| ارزونه | له زده کوونکو څخه د ارزونې په موخه پوښتنې وکړئ. | |
| لومړني فعالیتونه | سلام، لنډه احوال پوښتنه، د نوي درسی کال مبارکي، د ټولګي تنظیم، د حاضری اخیستل، د دریم ټولګي د درسونو یا دونه او درسامی هنر. | ۵ دقیقې |
| | انګیزوي پوښتنې:<br>کله مو مرحله په مرحله په پنسل ختکی رسم او رنګه کړی دی؟ | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
| --- | --- |
| • زده کوونکوو ته د لوست په اړوند لارښوونه وکړئ.<br>• ختېکی پر تختې رسم او د مراحلو په اړوند یې زده کوونکو ته توضیحات ورکړئ.<br>• دپنسل په واسطه د رسمولو د وروستۍ مرحلې په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>• د ختېکي د رنګولو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>• د زده کوونکو کارونه وڅارئ.<br>• د زده کوونکو د ترسره شوو کارونو ارزونه وکړئ او د دوی د هڅونې لپاره یې پردیوال ځوړند کړئ. | ۳۵ دقیقې |

**کورنۍ دنده**

د کتاب له رسمونو څخه په ګټه اخیستلو ختېکی رسم او رنګه کړئ او بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ.

**اضافي معلومات**

ښاغلی ښوونکیه! تا سو تېر کال د رسامۍ د هنر مضمون، لاسي کارونه، ډیزانونه او د رسمونو د رسمولو طریقې، خیالي رسمونه زده کوونکو ته تدریس کړي وو، د څلورم ټولګي د رسامۍ هنر په مضمون کې هڅه شوې ده، چې په لړ توپیر سره لاسي کارونه، لکه: ډیزاینونه او نوښتګر رسمونه او نور په نوموړي کتاب کې ځای پر ځای کړل شوي دي، چې په ډېرې حوصلې سره خپلو زده کوونکو ته د درسونو او پوښتنو په اړوند ځوابونه ووایي او ستونزې یې ورته حل کړي.

د دې کتاب د لومړي لوست د (ختېکي رسمول) په اړه باید یادونه وکړو، لومړۍ په ضعیف ډول ختېکی د کاغذ پر مخ پر پنسل رسم، وروسته یې د رنګ د مویک، د نقاشۍ د برس په واسطه رنګ کړئ.

د نقاشۍ او رنګولو په وخت دې هڅه وشي چې تیاره او روښانه برخې په پام کې ونیول شي او په انځور کې دې وښیي.

پرداز یوه هنري اصطلاح ده چې د پنسل په واسطه په انځور کې تیاره او روښانه برخې پکې ښودل شوي وي، د پرداز په نوم یادیږي، چې تیاره او روښانه برخې پکې ښودل کیږي.

## لوست ۳

# (٤ او ٥) مخونه

د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه) لومړی ساعت

| | | |
|---|---|---|
| د لوست عنوان | د فیل د سر رسمول | |
| عمومي موخې | پر پنسل د فیل سر له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| -دزده کړې موخې:<br>- پوهنيزې<br>- مهارتي<br>- ذهنيتي | له زده کوونکو هیله کیږي چې دلوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- د فیل د سر له رسمولو به سره بلد شي.<br>- د حیواناتو له رسمولو سره به مینه پیدا کړي.<br>- د فیل سر به رسم کړای شي. | |
| د تدریس طریقه | ځانګړي او ډله ییز فعالیتونه، پوښتني او ځوابونه، عملي کار او تمرین. | |
| د تدریس وسیلې | د رسامۍ هنرکتاب، پنسل، پنسل پاک، تخته، تباشیر او رنګ | |
| ارزونه | د ارزونې لپاره له څو زده کوونکو پوښتنې کوي. | |
| لومړني فعالیتونه | سلام، لنډه احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، دحاضرۍ اخيستل، دکورنۍ دندې له سمونې وروسته له تېر لوست سره په اړیکه کې پر نوي لوست پیل کوي. | ٥ دقیقې |
| | انګیزوي پوښتنې:<br>کله مو د فیل سر پر پنسل رسم کړی دی؟ | ٥ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|
| د لوست رسم پر تختې داسې رسم کړئ چې زده کوونکي ستاسې دلاس حرکت وګوري.<br>• درسم بیلابېلې مرحلې زده کوونکو ته ور وښيئ.<br>• پر تختې دسکیج کولو په اړوند ور سره مرسته وکړئ.<br>• د رنګولو په اړوند هغوی ته معلومات ورکړئ.<br>• د دوی د رسمونو څارنه وکړئ.<br>د لوست په پای کې د هغوی د رسمونو ارزونه وکړئ. | ۳۵ دقیقې |

**کورنۍ دنده**

یو وار بیا په کورونو کې د فیل سر رسم او ټولګي ته راوړئ.

**اضافي معلومات**

د زده کوونکو پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ. هغوی په دې وپوهوئ چې فیلان په ځینو هیوادونوکې شته، لکه: هندوستان، کانګو، افریقا، د آسیا په جنوب ختیځ کې او په د برما په ځنګلي سیمو کې ژوند کوي، د افغانستان په باغ وحش کې یو فیل ساتل کیدو، چې له یوه بل هیواد څخه راوړل شوی و؟

سکیج یوه هنري اصطلاح ده، داسې تعریف کیدای شي، د یوه شکل د بهرنیو خطونو رسمولو ته سکیج ویل کیږي، لکه: چې د فیل سر په رسمولو کې لومړی یې بهرني خطونه په پنسل ضعیف رسم کیږي، وروسته یې د سیوري او روښانه برخې پر پنسل پرداز کیږي، همدا رنګه د فیل سر د رسمولو له بشپړیدو وروسته یې د پنسل په واسطه رنګوو چې د دې کتاب په دریم او څلورم لوست کې د دې زده کړې په اړوند لارښوونه شوې ده.

# لوست ۱۲

## (۲۳ او ۲٤) مخونه

**د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه)** **لومړی ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| د لوست عنوان | د مرغانو رسمول | |
| عمومي موخې | د پنسل په واسطه د الوتونکو له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| -دزده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | له زده کوونکو هیله کیږي چې دلوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- پر پنسل د الوتونکو له رسمولو سره به بلد شي.<br>- د الوتونکو انځور به رسم کړای شي.<br>- پر پنسل به د الوتونکو له رسمولو سره مینه پیدا کړي. | |
| د تدریس طریقه | څانګړې او ډله ییز فعالیتونه، عملي، پوښتنې او ځوابونه، عملي کار او تمرین. | |
| د تدریس وسیلې | د هنرکتاب، پنسل، پنسل پاک، قلم، کتابچه، کاغذ، تخته، تباشیر، د نقاشي برس او د رنګ بوتل. | |
| ارزونه | ښوونکې دخپل ډاډ تر لاسه کولو لپاره له زده کوونکو څخه څو پوښتنې کوي. | |
| لومړني فعالیتونه | سلام، لنډه احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، دحاضرۍ اخیستل، دکورنۍ دندې له سمونې وروسته له تېر لوست سره په اړیکه کې پر نوي لوست پیل کوي. | ٥ دقیقې |
| | انګیز وي پوښتنې:<br>- تاسو په لاندې انځور کې کوم مرغه لیدلی شئ؟<br>- راتلونکی انځور ښګه رسم او پرداز کولای شئ؟ | ٥ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|
| • الوتونکي پر تختې رسم کړئ او د رنګولو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>• د رسمولو او رنګولو وروستۍ مرحلې په اړوند معلومات ورکړئ.<br>• د زده کوونکو د کارونو څارنه وکړئ.<br>• د هغوی کارونه و ارزوئ. | ۳۵ دقیقې |

**کورنۍ دنده**

زده کوونکوته لارښوونه وکړئ چې الوتونکي د کتاب له مخې مرحله په مرحله رسم کړي.

**اضافي معلومات**

ښاغلی ښوونکیه! زده کوونکي باید د رسامۍ په هنر کې په ځینو اصطلاحاتو و پوهیږي، په دې باید وپوهیږي چې سکیچ د رسامۍ په هنر کې در سمولو معنا ورکوي او په رسامۍ کې د اندازه ګیرۍ موضوع ډیره مهمه ده، زده کوونکو ته سم معلومات ورکړئ، له سیوري او روښانه برخې د پرداز په وسیله د یوه شکل منظم سکیچ زده کوونکوته وښیي. هغوی ته د اندازې اخیستنې جزیات ور وښیئ، د مثال په ډول: پنسل د څلورو ګوتو تر منځ باید ونیسي او د ښي لاس غټه ګوته باید د پنسل د نوکې خواته او ښي لاس په مستقیم ډول د انځور لوري ته چې رسموي یې، مستقیم اوږد کړئ او په ښی سترګه هغه وګورئ او کینه سترګه پټه کړئ، په هغه کې د انځور ژور والی، لوړوالی، کوچنیوالی او لویوالی د کاغذ په مخ پر پنسل اندازه کړئ، نقطې یې وټاکئ او بیایې رسم کړئ.

**ښاغلی ښوونکی:** په دې کتاب کې د تدریس دلار ښود له بیا لیکولو څخه ډډه شوې ده. تاسې کولی شئ چې له دې لارښود څخه د ټولو لوستو په تدریس کې ګټه واخلئ.